# شریعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦۹٦ ګڼه / یکشنبه ۰۲ رمضان‌المبارک ۱٤٤٦ هـ.ق / د کب ۱۲مه ۱٤۰۳ هـ.ش /۰۲ مارچ ۲۰۲۵ میلادي



افطار : ۵:۵۵
سحر : ۴:۵۱



اوقات افطار و سحر به افق کابل

## د غنمو له اړخه افغانستان ځان بسیاینې ته نږدې شوی

د کرنې، اوبو لګونې او مالدارۍ وزارت مرستیال صدراعظم عثماني وایي، له ملګرو ملتونو سره په همکارۍ یې یوه کاري دلـه جوړه کړې، چې موخه یې د کروندګرو ملاتړ او د بدیلو کښتونو ورکړه ده.

د ښاغلي عثماني په وینا، د یادې کاري ډلې ترمنځ وخت ناوخت غونډې کېږي او هېواد کې د نشه یي توکو پر ځای پر بدیل کښت غور شوی دی.

ښاغلي عثماني ویلي چې افغانستان په کال کې ۷ میلیونه ټنه غنمو ارتیا لري او زیاتوي چې اوسمهال په افغانستان کې په کال کې ۵ میلیونه ټنه غنم تولیدېږي او هېواد د غنمو د تولید له پلوه ځانبسیاینې ته نږدې شوی دی.

د دغه وزارت مرستیال څرګندوي چې په تېرو درېیو کلونو کې په افغانستان کې د حبوباتو تولید هم له ۹٦ زره ټنو ۱۲۷ زره ټنو ته لوړ شوی دی.

## د کب لسمه؛ د دوحې تړون افغانستان ته د اسلامي او خپلواک نظام ستنې کېښودې




**شریعت:** د دوحې په یوه پنځه ستوریز هوټل الشیراتون کې وروسته له هغې پر فضا د تکبیر غږونه خپاره شول، چې د افغانستان اسلامي امارت مشرانو له امریکایي یرغلګرو سره په یو تاریخي تړون لاسلیکونه وکړل.

دغه تړون، چې سږ پنځه کلن شو، افغانستان د اشغال له منګولو خلاص او د خپلواک اسلامي نظام ځښتن کړ.

د دوحې تړون په نامه مشهور دغه تړون د ۱۳۹۸ کال د کب په لسمه، چې د ۲۰۲۰ کال د فبرورۍ له ۲۹مې سره برابره ده، د افغانستان د سولې... ۳مخ

**د کرنې وزارت:**

## پر بزګرانو مو ۸۰ زره متریک ټنه سره وېشلې



د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت وایي، د اسلامي امارت له بیا واکمنېدو تر دې دمه د همکارو بنسټونو په ملاتړ یې پر بزګرانو څه باندې ۸۰ زره متریک ټنه اصلاح شوي تخمونه او ۲۴۰ زره متریک ټنه کیمیاوي سرې په ټول هېواد کې پر بزګرانو وېشل شوي دي. د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت ویاند مصباح الدین مستعین په وینا؛ هېواد کې د کیمیاوي سرو پروسس او تولید شپږ کارخونې فعالیت لري او هڅې روانې دي، چې دغه کارخونې زیاتې شي. نوموړي زیاته کړې، چې سرپرست حکومت په کرنیزه برخه کې د ماشینرۍ عصري او میکانیزه کولو برخه کې هڅې زیاتې کړې.

## د خوړو نړیوال پروګرام له سېلاب ځپلو سره مرستې کوي



د افغانستان لپاره د خوړو نړیوال پروګرام ویلي، چې په تېرو څو ورځو کې د افغانستان په یو شمېر ولایتونو کې سېلابونو ډېر خلکو ډېر زیانونه اړولي او ګڼ شمېر کورنۍ یې بېځایه کړې دي.

یاد پروګرام زیاتوي چې دا د سېلابونو پیل دی او... ۳مخ

## هرات کې د خطاطۍ هنر ننداړتون پرانیستل شو



د اطلاعاتو او کلتور وزارت وایي، د هرات په اختیارالدین کلا کې د خطاطۍ دایمي ننداړتون پرانیستل شو. د هرات ولایت د اطلاعاتو او کلتور ریاست مسئولینو ویلي، دا ننداړتون د اسلامي خطوطو د ارزښت او مقام د ساتنې په موخه جوړ شوی دی.

د هرات ولایت د اطلاعاتو او کلتور ریاست د کلتور... ۳مخ

## د منار جام دخوندیتوب چارې پیل شوې

د غور د مناز جام څلي د ساتنې لپاره د ګابیون دېوال پروژې کار پیل شوی دی. د غور د اطلاعاتو او کلتور ریاست مسئولین وایي، چې دغه پروژه د سېلابونو د خطر د مخنیوي لپاره پلې کېږي او دغه دېوال ۲٦۷ متره اوږدوالی او یو متر لوړوالی لري، چې ۵۰ ورځو کې به د ۳۲ زره امریکایي ډالرو په لګښت جوړ شي. نوموړي وویل چې د دې پروژې په بشپړېدو سره به د جام منار د سیلاب له زیان څخه خوندي شي.





۲ مخ



### د تفکر، منطق او مغزونو وینځلو نړۍ، موږ ته څه کول په کار دي؟



۲ مخ



### تراویح دې په بېړه نه، بلکې آرامې وشي!



۲ مخ



### د روژې روحاني تأثیرات

## سرمقاله

## د پاکستاني چارواکو روان چلند به خطرناکې پایلې ولري!

ښکاره ده چې د پاکستان واکمن دا مهال د پښتنو او بلوڅو مغصوبه سیمو کې له جنګ- جګړو او سخت ولسي مخالفت او مقاومت سره مخ دي. البته دا جګړې او مخالفتونه که څه هم ان د پاکستان له جوړېدو سره را پیل شوي خو بیا کله چې ناټو پر افغانانو برید وکړ او پاکستاني جنرالانو خپلو نظامي مراکزو او هوایي اډو کې یادو صلیبي یرغلګرو ته ځای ورکړ، استخباراتي او لوژستیکي اسانۍ یې ورته چمتو او ټوله ډیورنډ کرښه یې د خندقونو، جالونو او دېوالونو په واسطه بنده او د تلونکو- راتلو پرمخ وتړله، نو د خلکو کرکه نور هم راوپارېده او خبره تر سختو ډله ییزو مخامخ جګړو ورسېدله- په دې توګه پاکستاني نظامیان په یوه پراخه ولسي جګړه کې ښکېل او د ډېرې وارخطایي له کبله د انتهایي تشدد مرتکب او لوی لوی کلي یې بمبار کړل- خو طبیعي ده چې د مرګ- ژوبلې او تاوتریخوالي په نتیجه کې د مخالفتونو لمن نوره هم پراخیږي، ځکه خو د ټولنو له منځه ډېرو مخورو اشخاصو او دیني علماؤ هم د واکمن پوځ پر خلاف په ډاګیزه توګه خپل اوازونه اوچت کړل چې له بده مرغه بیا هم د همدغو واکمنو له خوا د داعش په یادولو ترور او له منځه یوړل شول- په دې معنی چې د همدغو نظامیانو له خوا پالل شویو داعشي خوارجو د ډېرو علماؤ او ټولنیزو مخوروشخصیتونو د وژنې پړه پرځان واخیسته او لا هم لګیادي په همدې نامه افغانستان کې د ننه هم کله ناکله څه بریدونه کوي او بې ګناه مسلمانان په شهادت رسوي- دغه راز پاکستاني نظامیان د ډیورنډ کرښې په اوږدو کې هم وخت ناوخته افغان ځواکونو سره لاس اچوي، مداخلې کوي، جنګي ځوکۍ جوړوي او پرته له کوم موجبه لارې بندوي چې دواړو خواو سوداګرو ته په کروړونو زیان اړوي- تردې ورها خوا پاکستاني واکمن په نړیوالو ډګرونو کې هم د افغانانو د بدنامولو او هغوی ته شک وراچولو په چاره لګیادي- په داسې حال کې چې د افغان مهاجرو... ۳مخ

## جوزجان کې د اوبو رسونې ۲ شبکې ګټې اخیستو ته وسپارل شوې



د جوزجان ولایت په مرکز شبرغان ښار کې د ۱۲ میلیونه افغانیو په لګښت د اوبو رسولو د دوو شبکو د جوړولو چارې بشپړې او ګټې اخیستنې ته وسپارل شوې. د کلیو، بیارغونې او پراختیا سرپرست وزیر محمد یونس اخوندزاده، دغه ولایت ته د خپل سفر په ترڅ کې، په ګلستان کلي کې د اوبو رسولو یوه شبکه او د ۲۰۰ بستریز ولایتي روغتون لپاره یوه بله شبکه، چې د ملګرو ملتونو د ماشومانو وجهي صندوق په مالي مرسته جوړه شوې وه، پرانیستې.

د ۲۰۰ بستریز روغتون د اوبو رسولو شبکې په پرانیستلو...۳مخ

## کونړ کې د ښاري سرغړونو مخنیوی وشو




د کور او ښار جوړولو وزارت په کونړ کې د ښاری سرغړونو له مخنیوي خبر ورکړی دی. له ښاري سرغړونو د... ۳مخ

## ارزګان کې ۳ ښوونځیو ته د لمریزې برښنا سیستمونه چمتوشول



د پکتیکا په ارګون ولسوالۍ کې یو سوداګر په خپل لګښت د درېیو ښوونځیو لپاره د ۵ زره ۱۰۰ ډالرو په ارزښت د لمریزې برښنا سیستمونه جوړ او ګټې اخېستنو ته وسپارل شول.

د یاد ولایت د پوهنې ریاست مسوولینو د افغان سوداګر دغه کار ستاینه کړې او له... ۳مخ

# تراویح دې په بیړه نه، بلکې آرامې وشي!

حسان مجاهد



رســول الله«ص» فرمایي: څوک چې له ایمانه سره د ثواب په نیت د رمضان روژه ونیسي او د شــپې لمونځ (تراویح) وکړي الله تعالی به یې له ګناهونو څخه داسې پاک کړي لکه په کومه ورځ چې له موره زیږېدلی و.(ســنن ابن ماجه)

په رمضان کې د ورځې عبادت؛ روژه نیول او د شــپې عبادت تراویح کول دي.

لکــه څنګــه چې په فرضي او نفلي روژه کې له ســپېدو را ختلو بیــا تر لمر لوېدو پــورې له خوراک، څښــاک او جنســي اړیکو څخه ځان منعه کول شــرط دی او هېڅ توپیر یې تر منځ نشــته؛ همدارنګه تراویح که څه هم سنت عمل دی، خو له فرضي لمانځه ســره په شرایطو او آدابو کې هېڅ توپیر نه لري.

شــیخ جمال الدین قاسمي رح لیکلي دي« له شــکه پرته تراویح لمونځ د رمضان په هره شــپه کې منقول سنت دی، خو ځیني ناپوه امامان یې په داسې توګه ادا کوي چې د لمانځه ارکانو او ســنتو ته زیان رســېږي لکه په رکوع او ســجده کې ارام نه کــول، په قرائت کې بعضې حروف په بعضو نورو داخلول. چې دا د مؤمنانو لپاره د شــیطان لخوا له سترو فریبو څخه شمېرل کېږي، چې په نېک عمل باندې له راتګ ســره بیا هم عمل فاســد وګرځي، بلکې د ډېرو شــیطان پلویو لمنځونه تر اطاعت د لوبــو خواته ور نږدې وي. نو هر لمونــځ کوونکی که فرض کوي که نفل؛ باید د لمانځه ظاهري شــکل هم سم کړي لکه قرائت، رکوع او سجده او د لمانځه باطني شکل هم سم کړي لکه خشــوع، عاجزي، پوره اخلاص، په ایاتونو کې سوچ کول او د قرآن کریم معناګاني فهمول.[اصلاح المســاجد ص۸۵_۸۶)

علماوو دا مکروه بللې ده چې امام په لمانځه کې دومره بېړه وکړي چې له مقتدیانو په لمانځه کې ســنت پاتې شــي؛ نو هغه بېړه به څنګــه روا وي چې واجبات پاتې شي؟! [ مخالفات رمضان ۷۷]

په ډېرو ســیمو کې د خلکو نظریه داســې جوړه شــوې ده چې تراویح باید په بېړه وشــي، د تأسف خبره داده چې امامان هم د مقتدیانو په خوښه لمونځ کوي، د هغه امام په تراویحو کې خلک ډېر له ســترګو کېږي، چې په بېړه یې ادا کوي.

تراویــح، فرض، ســنت او وتر ټول ۲۹ رکعتــه لمونځ، تســبیحات او دعاګانې په پنځویشــت دقیقې یا نیم ساعت کې ترسره کړي چې یو رکعت لمانځه ته یوه دقیقه وخــت هم نه پاتې کېــږي، آیا په دې ډول لمانځه کې به د لمانځه ټول شــرایط او احکام پوره لحاظ وي او آیا داشــان لمونځ عبادت دی او که هســې یو ســیمه ییز عادت دی؟!

ځیني کسان د رسول الله«ص» هغه حدیث چې « څوک خلکو ته لمونځ ورکوي؛ نو تخفیف(آســانی)دي کوي» ددې لپاره دلیل ګرځوي چې تراویح لمونځ باید په بېړه وشــي او آخر دومره په بیړه یې کوي چې قرائت، رکوع، ســجده، قیام او جلسه هېڅ په ســمه توګه نه ادا کېږي، ســره له دې چې د ټولو رکنونو په آرام سره ادا کول واجب کار دی.

د رســول الله«ص» په مخ کې یو ســړي لمونځ وکړ، رسول الله«ص» ورته وویل «لمونځ له سره کړه، ســتا لمونځ نه دی شوی» هغه سړی درې ځله لمونځ له سره کوي، خو بیا هم رســول الله«ص» ورته هغه الفاظ وایي. هغه سړي وویل قسم په الله! زه یې تردې ښــه نه شــم ادا کولی، ته یې را وښیه! رسول الله«ص» ورته وایي «کله چې ځان لمونــځ کولو ته چمتو کوې؛ نو اودس وکړه، مخ پر قبله ودرېږه، له قرآن څخه آســانه قرائت ووایه، بیا رکوع ته ښــه په آرام او بې حرکته ټیټ شه، بیا له رکوع څخه ښــه په آرام ودرېږه، بیا ښه په آرام سره سجده وکړه، بیا له سجدې څخه د راپورتــه کېدو پرمهال ښــه آرام وکړه او بیا همدا عمل په ټول لمانځه کې ترســره کړه (صحیح البخاري)

هرکله چې رســول الله«ص» دا ډول لمونځ د قبول وړ وبلل؛ بیا به ولې له تخفیف څخه مراد دا وي چې لمونځ په داســې توګه ترســره کړي چې پورته ټول شــیان په کې پرېښودل شي.

بله خبره دا چې تراویح که څه هم ســنت عمل دی، خو ســنت په پیلېدو سره لازم ګرځــي او د فرائضو مقام نیســي، نو بیا ولې تر تراویح وړاندې فرض او وروســته واجــب وتر په احتیاط ادا کېږي او تراویح په بیړه؟!

رســول الله«ص» وایي: کله چــې یو لمونځ کوونکی د لمانځــه حق ادا نه کړي، نــو همغه لمونځ ملائکې په یوه خیرنه ټوټه کــې ونغاړي او لمونځ کوونکی په مخ وویلــي او دغه لمونځ، لمونــځ کونکي ته ووایي «الله تعالی دې داســې ذلیل او خوار کړه لکه زه چې دې خوار کړم»

ځیني حافظان قرآن کریم دومره په بېړه ســره وایي، چې هېڅ ترتیل په کې مراعات نه وي. رســول الله«ص» فرمایي: ډېر ځله به څوک قرآن وایــي خو قرآن به بېرته په ویونکی لعنت وایي!

تراویح هــم د نورو لمونځونو په څېر له الله تعالی ســره خبــرې دي، په دنیا کې څوک له لوړ رتبه ســړي ســره په بېړه نه غږېږي؛ نو الله تعالی سره ولې باید خبرې په بېړه وشي!

په دې برخه کې ټول مســئولیت د مسجدونو امامانو ته راګرځي، دوی باید عبادت د اســلامي شــریعت په چوکاټ کې ادا کړي او د مقتدیانو تر شخصي رضایته تېر شــي، هغوی د لمانځه په اهمیت خبــر کړي؛ ترڅو عبادت د دوی لپاره وباله او د الله تعالی د نارضایي سبب نه شي.

# د روژې روحــانــي تــأثیـرات

محمد قاسم عزام

روژه د انســان روح ته تــازه والی ورکوي، زړه ته سکون ښښــي او د فکر نړۍ روښانه کوي. دا میاشت د صبر، تقوا او د الله جل جلاله د رضا ترلاســه کولو یــو ځانګړی فرصــت دی. د روژې پــه برکت، انســان خپل نفس قابــو کوي، د دنیا له شــور او مصروفیتونــو لرې لرې کېږي او خپل روح د عبادت، ذکــر او توبې له لارې صفا کوي.

رسول الله «ص» فرمایي: "الصِّيَامُ جُنَّةٌ" (روژه یــو ســپر دی) (بخــاري، ۱۸۹۴؛ مســلم، ۱۱۵۱). دا حدیث روژه د ګناهونو او نفساني غوښــتنو پر وړاندې د یو دفاعي دېوال پــه توګه معرفي کــوي. کله چې یو بنــده د روژې حالت کې وي، د شــیطان وسوسې کمېږي، زړه یې د الله جل جلاله له یاد څخه ډکېږي او د اخلاص جذبه یې پیاوړې کېږي.



کله چــې یو شــخص د لــوږې او تندې احســاس کوي، د ژوند مــادي اړخ ته یې پام کمېږي او زړګــی یې د الله جل جلاله په یاد نرمېږي. روژه د انســان د روح صفا کولو، د فکر پاکولو او د زړه د نرمولو لپاره یو ځانګړی فرصت دی. د بدن خواهشات کمــزوري کېــږي، نفــس کنټرولېږي، او د دنیــا له فانــي لذتونو څخــه پام آخرت ته اوړي. دا حالت انســان تــه د الله جل جلاله د نعمتونو ارزښــت ورپه زړه کوي، د عاجزۍ او تواضع حس پیاوړی کوي او د هغه بندګانو احســاس ورته ورکوي چې تل وږې وي او د رزق له کمښــت سره مخ وي. کله چې بنده د لوږې او تندې سختي احساس کړي، زړګی یې نرمېږي، فکر یې روښــانه کېږي او د خپلــو اعمالو ارزونه کوي. دا شــېبې د محاسبې، ښښنې او توبې غــوره فرصتونه دي، ځکه روژه د زړه، فکر او احساســاتو تزکیه ده. هــره ورځ د روژه دار لپاره یو نوی فرصت دی، هر ماښــام د دعا قبلېدو وخت دی او هره شــېبه د نفس د کنټرول، تقوا او صبر روزنه ده. نبي کریم فرمایــي: "لِلصَّائِمِ فَرْحَتَــانِ: فَرْحَةٌ عِنْدَ فِطْــرِهِ، وَفَرْحَةٌ عِنْدَ لِقَــاءِ رَبِّهِ" (روژه‌دار ته دوه خوشــحالۍ دي: یــوه د روژه ماتي پر وخت او بله د خپل رب ســره د ملاقات پر مهال) (بخاري، ۱۹۰۴؛ مســلم، ۱۱۵۱).

روژه ماتی یوازې د خوراک له امله نه دی، بلکې د عبادت لــه امله د ارام او طمانینې یو احســاس دی، چې بنده یې د الله جل جلالــه د رضا لپاره کوي. همــداراز، کله چــې بنده له دې دنیــا کوچېږي او د خپل رب حضور ته حاضرېږي، د روژې برکت د خوښــۍ سبب ګرځي، ځکه دا عبادت د صبر، تقــوا او د الله جل جلاله د رضا یوه بې‌ساري نښه ده. روژه انسان ته دا ورښیي چې اصلي خوشــحالي د دنیا له عارضي لذتونــو نه، بلکې د الله جل جلاله له رضا سره تړلې ده. څوک چې د روژې په برکت خپل نفس تــه قابو مومــي، د صبر درس اخلي او د عبادت خوند احساســوي، هغه د روژې حقیقي ثمره ترلاســه کوي. روژه د بدن لپــاره زحمت نه، بلکې د روح لپاره یو نعمت دی، چې د انسان زړګی پاکوي، تقوا روزي او د الله جل جلاله د قربت یوه مهمه وسیله ګرځي.

د روژې په برکت، د انســان روح د دنیا له بې‌ځایه غوښــتنو پاکېږي. د نفس سرکشي کمېــږي، د بــدن غوښــتنې کنټرولېږي او زړه د تواضــع او عاجزۍ احســاس کوي. دا حالت انســان ته دا ورښــیي چې د دنیا نعمتونــه د الله جل جلاله احســان دی، نه د ده خپل اســتحقاق. ابــن القیم رحمه الله وایي: "الصوم یهذب النفس ویکســر الشــهوة، ویعلــو بالــروح عن مســتنقع الشــهوات، فتصیر النفس مطمئنة بعد أن کانت أمارة بالسوء." (زاد المعاد، ۲۹/۲). یعنې، روژه نفس ته تزکیه ورکوي، شهوت کمزوری کوي او روح د شــهواني دنیا له مرداری پورته کوي، تــر دې چې نفس له اماره بالسوء (د بدۍ حکم کوونکي) څخه مطمئنــه (آرامه) ته بدلېږي. همداراز، امام غزالي رحمه الله وایــي: "الصوم باب من أبواب الزهد، به یُروض الإنسان علی کبح شــهواته، ویبلغ مقام المراقبة والإحسان." (إحیاء علوم الدین، ۲۵۵/۱). یعنې، روژه د زهد (دنیــا پرېښــودلو) دروازه ده، چې انســان پرې خپل شــهوتونه قابو کوي او د مراقبې او احسان مقام ته رسېږي.

کلــه چې یو څوک د روژې لــه برکته خپل ځــان کنټرول کــړي، د تقوا لــوړ مقام ته رســېږي. دا هغه حالت دی چې انسان ته د حــلال او حرام، د نیکــۍ او بدۍ، او د اخلاص او ریا تر منځ فرق واضحه کوي. روژه د انســان باطني بصیرت تیزوي، فکر ته روڼتیــا ورکــوي او د زړه توروالی لرې کوي. سفیان الثوري رحمه الله وایي: "إذا جاع المؤمن صَفَتْ روحه، وإذا شــبع قَسَا قلبــه." (حلیة الأولیــاء، ۳۹۰/۶). یعنې، کلــه چې مؤمن وږی شــي، روح یې صفا کېــږي، خو کلــه چې ډېر موړ شــي، زړه یې ســختېږي. امام ابن رجب رحمه الله هــم وایي: "للصائم فرحة عنــد لقاء الله، لأنه یأتي بصیامه الذي کان ســبباً في کسر شــهواته، ورفع درجته عند ربه." (لطائف المعــارف، ۱۵۰/۲). یعنــي، روژه‌دار ته د اللــه جل جلاله د ملاقــات پر مهال خوشــحالي ځکه ورکول کېــږي چې هغه بــه روژه له ځان ســره یوســي، چې د ده شــهوتونه یې مات کــړي وو او د الله جل جلاله په نزد یې درجه پورته کړې وه.

د دې مبارکــې میاشــتې برکت دا دی چې انســان خپل نفس ته غوږ ونیســي، خپل اعمــال وڅېړي او د الله جل جلاله ســره د اړیکــې د قــوي کولــو هڅــه وکړي. د رمضان شــپه او ورځ د دې لپاره دي چې انســان خپل رب ته نږدې شي، خپل ژوند ته یــو نوی هدف ورکــړي او د زړه دنیا له روحاني رڼا ډکــه کړي. روژه د زړونو هغه دروازې پرانېزي چې عادي ورځو کې بنده وي، د دعاګانــو تاثیر زیاتوي او د رحمت فضا داســې جوړوي چې د ښښنې امیدونه ورسره غوړېږي. نبي کریم «ص» فرمایي: "په رمضان کې هره ورځ او شــپه الله جل جلالــه ځیني بنــده‌ګان لــه دوزخ څخه آزادوي، او د هر مســلمان دعــا قبلېږي" مسند احمد، ۷۴۵۰.

دا میاشت د عبادت، استغفار او د اخلاص زده کړې وخــت دی. څوک چې د روژې په برکــت خپل زړګی د دنیا له ګردونو پاک کړي، هغه ته دا میاشت د حقیقي سکون، معنوي قوت او د اللــه جل جلاله د قرب سفر ثابتېږي. نو روژه د روح د صفا کولو، د صبر او تقوا د ترلاسه کولو، او د بنده‌ګۍ د لوړ مقام ته د رسېدو یو بې‌سارې فرصت دی، چــې باید هر مســلمان یــې د خپل اصلاح لپاره په پوره اخلاص وکاروي.

# د تفکر، منطق او مغزونو وینځلو نړۍ،موږ ته څه کول په کار دي؟

رحمت الله فیضان

ننۍ نــړۍ د زور، تحمیل او اجبار نړۍ نــه ده، بلکې د تفکــر، منطــق، تدبیر، استدلال او د تکنالوژۍ پر مټ د مغزونو وینځلــو نړۍ ده. په داســې یــو حالت کې، موږ ته پــه کار ده چې له علمي او اســتدلالي میتودونو ګټــه واخلو، خلک د اسلامي او اخلاقي ارزښــتونو پر لور داســې وهڅوو چې تصــادم رامنځته نه شــي او د هغو خلاګانو د رامنځته کېدو مخه هم ونیســو چې ولــس د نامطلوبو بدیلونو پر لور بیایي.

که موږ خپلو اولادونو ته ســالم تعلیمي چاپېریــال برابر نه کړو، زموږ دښــمنان بــه یې زمــوږ د عقیدې، کلتــور او ملي ارزښــتونو پر ضد وروزي، لکــه څنګه چې همدا اوس زمــوږ اولادونه د پردیو تر روزنې لاندې دي.

که موږ هغوی ته د ســالمې بوختیا زمینه برابــره نه کــړو، هډونه به یې پــه پردیو هېوادونــو کــې اوبه شــي، لکــه څنګه چــې نن زموږ ځوان نســل د یوې ګولې دوډۍ په خاطر د پردیو تــر درنو څپېړو او سپکاویو لاندې ژوند کوي.

که موږ خپلو اولادونو ته ســالم تفریحي چاپېریــال برابر نه کړو، نو دوی به پردیو محفلونو ته شــپې رڼې کړي.

کــه موږ خپلو اولادونو ته په رســنیو کې ســالمه محتوا چمتو نــه کړو، د پردیو له مبتذلو محتواوو څخــه به ګټه واخلي او د خپلو معلوماتــي او تفریحي اړتیاوو د پوره کولو لپاره به د دښــمنانو له رســنیو ته مخه کړي.

نن زموږ د ملي رســنیو محتوا کمزورې ده لیدونکي ،اوریدونکي او لوستونکي نه لــري ، خلکو د ملي رســنیو پرځای ماهواره‌یــي چینلونــو څخــه ګټه اخلي، چې ډېری یې غیر اخلاقي او له اسلامي ارزښتونو سره په ټکر کې وي.

که موږ د ماهواره‌یي شــبکو اســتعمال محــدود کــړ، نو خلــک بــه د انټرنېټ لــه لارې خپلې غوښــتل شــوې محتوا ته لاسرســی پیــدا کړي، چــې کنټرول یــې خــورا لــوړ لګښــت او ژوره پوهه غواړي.

نو ځکه خــو په کار ده،چــې د ټولنې د سمون، د فاســدو عقایدو د مخنیوي او د ناسمې روزنې د اغېزو پر وړاندې، یو منطقــي، مدبرانه او اغېزنــاک تګلوری وټاکل شي داسې تګلاره چې هم خلک راضي وســاتي او هم د هغوی عقیدوي او اخلاقي ارزښتونه خوندي کړي.



# کار تحکیمات لات هشتم سواحل دریای آمو آغاز شد

وزارت آب و انرژی می‌گوید، کار تحکیمات لات هشتم سواحل دریای آمو در ولایت تخار به ارزش ۶۵ میلیون افغانی آغاز شد.



بربنیاد خبرنامه، پروژه ساخت تحکیمات لات هشتم سواحل دریای آمو در ساحه «یتیم تپه» ولسوالی درقد ولایت تخار آغاز شده است.

به گفته وزارت آب و انرژی قرار است کار این پروژه تا یازده ماه آینده تکمیل و به بهره‌برداری سپرده شود.

با تکمیل کار پروژه یادشده صدها منزل مسکونی، مساجد و زمین‌های زراعتی از خطر آب‌خیزی دریای پنج‌آمو محفوظ خواهد شد. فراهم‌سازی زمینه کار برای ده‌ها تن در جریان تطبیق این پروژه از دیگر مزیت‌های این پروژه گفته شده است.

دریای پنج‌آمو از دریاهای مشهور و پُر آب در شمال‌شرق کشور است.

## د کب لسمه؛ د دوحې تړون افغانستان ته...

لپاره د امریکا د پخواني ځانګړي استازي زلمي خلیلزاد او د اسلامي امارت د هغه وخت د سیاسي دفتر مشر او د اوسني ریاست الوزراء اقتصادي مرستیال ملا عبدالغني برادر له خوا لاسلیک شو.

د امریکا پوځي ځواک ته په کتو چا فکر نه کاوه، چې له اسلامي امارت سره دې د خبرو میز ته کېني او د هغوی ټولې غوښتنې دې ومني خو د خپلې ماتې پټولو لپاره یې همداسې وکړل.

په قطر کې د مذاکراتو برخوال او د صحنې عیني شاهد مولوي عتیق الله عزیزي، چې اوس د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت مرستیال دی، په دې اړه ویلي: «دا له عقل او تصور نه پورته وه، چې امریکا دې له دومره زور، غرور او دبدبې سره، هغسې چې اسلامي امارت یې غواړي، په تړون امضاء وکړي».

ښاغلي عزیزي څرګنده کړه، چې په لومړیو وختونو کې له خپلو غوښتنو د اسلامي امارت په شا کولو لپاره امریکا مختلفې حربې وکارولې.

هغه وویل»جنګي او سیاسي دواړه حربې یې په کار اچولې وې، مشران یې ګواښل او ویل یې چې د مذاکراتو هغسې سر ته رسېده، چې تاسو یې غواړئ، امکان نه لري».

د نومړي په وینا، خو دوی باوري وو چې امریکا به یې ټولو شرطونو ته د منښت سر ټیټوي.

د دوحې تړون د لاسلیک له مخې، ټول امریکایي او ناټو ځواکونه له افغانستان څخه ووتل، چې دا ګام د یاد هېواد لپاره د اشغال پای او د ازادۍ پیل ګڼل کېږي.

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د خپرنیزو چارو مرستیال مولوي حیات الله مهاجر فراهي په یوه پیغام کې دا ورځ د افغانستان په تاریخ کې مهمه ګڼلې ده.

د ده په وینا، ځکه چې د افغانستان خپلواکۍ ته یې لار هواره کړه او امریکایانو رسماً ومنله، چې «دوی په افغانستان کې مات شوي دي» او د اسلامي امارت ټول شرایط یې ومنل.

مولوي فراهي څرګنده کړه، چې واک ته د اسلامي امارت له راتګ وروسته په هېواد کې په هره برخه کې مثبت بدلونونه راغلي او زیاتوي، چې په دې نظام پسې پروپاګنډ خپروونکي انساني او رسنیز اصول ماتوي.

دغه راز د اسلامي امارت مرکزي ویاند ذبیح الله مجاهد هم د کب د لسمې په تړاو په یو پیغام کې ویلي: «د دوحې تړون په نتیجه کې افغانستان د استقلال مرحلې ته ورسېد او دا یو لویه لاسته راوړنه وه».

مجاهد وویل، چې په تړون کې د نورو برخو تر څنګ دوه اساسي ټکي دا وو، چې بهرني ځواکونه به په بشپړه توګه له افغانستانه وځي او افغان حکومت به نه پرېږدي، چې خاوره یې د ګاونډیو او نورو هېوادونو پر وړاندې استعمال شي.

نومړي ټینګار وکړ، چې دا کارونه په ښه بڼه سر ته رسېدلي خو په خبره یې، امریکا لا هم د ځینو شرطونو په منلو کې ناغېړي کوي.

ښاغلی مجاهد، د اسلامي امارت پر څه مشرانو د بندیزونه پای ته رسول او له افغانستان سره ښه چلن ته راستنېدل د تړون هغه ټکي یادوي، چې امریکا تر اوسه نه دي عملي کړي.

هغه پر امریکا غږ وکړ، چې د تړون پاتې برخې عملي کړي.

د دوحې تړون د افغانستان د اسلامي امارت بریا او د امریکا ماتې وه، که جوړجاړی؟

عام ولس او سیاسي مبصرین هم په دې باور دي، چې د افغانانو ۲۰ کلن جهاد او مبارزې اشغالګر خبرو اترو ته اړ کړل، چې په پایله کې یې د دوحې تړون لاسلیک او هېواد ته خپلواکي نصیب شوه.

د سیاسي چارو شنونکی سید احمد فاطمي هم څرګندوي، چې امریکا مجبوره وه چې له اسلامي امارت سره خبرو ته کېني.

هغه زیاته کړه: «امریکا ماته شوې او دا پخپله د امریکایي جنرالانو، وزیرانو او سیاستوالو له خولې ثابتدای شي. خلیلزاد په خپله وویل چې امریکا دلته نظامي او سیاسي ماته خوړلې ده. دغسې جنرال مکنزي هم ورته خبره وکړه، چې له سیاسي ماتې یې موخه د دوحې توافق و».

یو شمېر امریکایي سیاستوالو په دې وروستیو کې بار بار وویل، چې د دوحې تړون ته دې له سره کتنه وشي، چې د ښاغلي فاطمي په باور له همدې د امریکا سیاسي ماتې ثابتدای شي.

بل سیاسي شنونکی روح الله هوتک، د دوحې هوکړه د امریکا د ماتې اعلان او په افغانستان کې د یو متمرکز او خپلواک نظام د ټینګښت ذریعه ګڼي.

ښاغلی هوتک وایي: «موږ ازادي تر لاسه کړه. په افغانستان کې د خپلو خوښو او ارادو په چوکاټ کې د یو متمرکز نظام څښتنان شو. هغه نظام چې په انارشیو، په فساد د خلکو د مالونو په تاراج، د زیاتو هېوادونو نیابت د خلکو د ربړولو لپاره له جوړې شوې اداري څخه خلاص شو».

د هغه په وینا، اوس ایله خپل اصالت ته راګرځېدلي دي او د خپلې اقتصادي پراختیا او له خپلو زېربناو څخه د استفادې په برخه کې په نړۍ کې د یو خپلواک هېواد په توګه و پېژندل شو.

ده زیاته کړه، چې»د اقتصاد محوره پالیسۍ په اساس دننه په سیمه او نړۍ کې له هېوادونو سره تعامل لرو» او کولی شي خپلې ګډې ګټې پخپله تعریف او تمثیل کړي.

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ رئیس نعیم الله سمنګاني په یو پیغام کې ویلي، اسلامي امارت سره د مذاکرې مېز ته د امریکا غونډه د هغوی د ماتې ښکارندویه ده.

هغه ټینګار کړی چې د کب لسمې، د ازادۍ او ازادي غوښتونکو په معاصر تاریخ کې یو ځلېدونکی باب پرانیست.

د یادولو وړ ده، چې دې تړون د افغانستان په تاریخ کې له ټولو اوږدې جګړې ته د پای ټکی کېښود او په پایله کې یې افغانستان د داسې یو نظام څښتن شو، چې د مسئولینو په وینا، د خپل ملت د هوساینې لپاره د نړۍ له ټولو هېوادونو سره د اقتصادي سیاست په چوکاټ کې د متقابل درناوي پر بناء اړیکې پالل غواړي.　**نذیرمنیب**

## افغان اعلانات

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم شرکت تمیم یاسر لمتید یک عراده موتر پلیت ۷۳۳۴۵- ۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا غرفه دار جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای نقیب فرزند سلیمان زی بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۵۷۱

***

اطلاعیه فروش و تغییر اسم کلینیک

اسامی محترم محمد زیور فرزند علی پادشاه مالک ( شفاخانه اختصاصی سخا) که قبلاً ذریعه مکتوب شماره ۶۸۴۸۹۹ مورخ ۱۳۹۶/۹/۱۳ رسماً از طریق این ریاست در مربوطات ناحیه پنجم شهر کابل افتتاح گردیده ، طی درخواستی به مقام محترم وزارت صحت عامه خواهان تغییر شفاخانه اختصاصی خویش از نسائی ولادی به شفاخانه اختصاصی عقلی و عصبی و جراحی اعصاب بیست بستر گردیده است که مقام محترم احکام لازم ارشاد فرموده اند.

اشخاص ، موسسات و دوایر دولتی که در مورد شفاخانه فوق الذکر ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ده یوم به ریاست محترم تنظیم و هماهنگی سکتور خصوصی وزارت صحت عامه مراجعه نموده در غیر آن ادعای شان باطل می باشد. ۹۵۶۲

***

**اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد**

به تأسی از فیصله شماره ٥٢٤ مؤرخ ١٤٤٦/٠٨/٢٦ کمیسیون محترم تدارکات ملی به اطلاع عموم رسانیده می شود:

ریاست تدارکات ملی اداره امور ا.ا.ا به نماینده گی از د افغانستان برشنا شرکت در نظر دارد، قرارداد تهیه و تدارک ٦٨ قلم تجهیزات برقی و مواد ساختمانی پروژه شبکه برق رسانی قریه جات ولسوالی جلریز ولایت میدان وردک دارای شماره داوطلبی NPD/DABS/1403/G-962/NCB را به کوپراتیف اردوی ملی آدرس وزارت دفاع ملی، شش درک، ناحیه دوم مرکز کابل به قیمت مجموعی ٦٨,٩٩٩,٩٩٩ (شصت و هشت میلیون و نه صد و نود و نه هزار و نه صد نود و نه) افغانی»، اعطاء نماید.

اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن به ریاست عمومی اداره ا.ا.ا، ریاست تدارکات ملی، معاونیت تخنیکی، آمریت تسهیلات تدارکاتی، منزل اول، پشتونستان وات، کابل - افغانستان؛ وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات ارائه نمایند.

این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقد نخواهد شد.

***

**اطلاعیه تصمیم اعطای قرارداد**

بدینوسیله به تأسی از فقره (۲) ماده چهل و سوم قانون تدارکات به اطلاع عموم رسانیده می شود:

ریاست تدارکات ملی، ریاست عمومی اداره امور امارت اسلامی افغانستان در نظر دارد تا به نمایندگی از ریاست عمومی شرکت های امارتی/دافغانستان برشنا شرکت به اساس فیصله شماره ٥١٩ مؤرخ ١٤٤٦/٠٨/٢٦ کمیسیون محترم تدارکات ملی قرارداد پروژه: تدارک ۲۰ قلم تجهیزات برق رسانی قریه جات ولسوالی چمتال ولایت بلخ تحت شماره داوطلبی NPD/DABS/1403/G-827/NCB/Rebid را به شیرزی شبیر لمیتد دارای نمبر جواز فعالیت ۲۱۰۹۸ و آدرس شش درک، مرکز کابل، افغانستان؛ به قیمت مجموعی ٥٧،٨٠٦،٢٦٥ افغانی (پنجاه و هفت میلیون و هشت صدو شش هزار و دو صدو شصت و پنج افغانی)، اعطا نماید.

اشخاص حقیقی و حکمی که هرگونه اعتراض در زمینه داشته باشند، می توانند اعتراض خویش را از تاریخ نشر این اعلان الی هفت روز تقویمی طور کتبی توأم با دلایل آن وفق احکام ماده پنجاهم قانون تدارکات به ریاست تدارکات ملی ارائه نمایند.

آدرس: آمریت تسهیلات تدارکاتی، معاونیت تخنیکی، ریاست تدارکات ملی، ریاست عمومی اداره امور، پشتونستان وات، کابل - افغانستان.

یادداشت: این اطلاعیه به معنی عقد قرارداد نبوده و الی تکمیل میعاد فوق الذکر و طی مراحل قانونی بعدی، قرارداد منعقد نخواهد شد.

## د پاکستاني چارواکو روان چلند به...

په ځورلو کې د دوی چلند په لس ګونو ځله د نړیوالو تر نیوکو لاندې راغلی او غندنه یې شوې ده- له دې ګردو ملحوظاتو او زموږ په کورنیو چارو کې د هغوی د بې ځایه مداخلو او دروغجن پروپاګند سره سره اسلامي امارت لاهم پرخپل دروند سیاست ټینګ ولاړ او له دوی سره د ځان مشغولولونه یې په کلکه ډډه کړې، خو په همدې ترڅ کې د پاکستان له دوه سوه میلیوني مسلمان ملت نه دا هیله هم کوي چې باید د واکمنو لاس ونیسي او د روان چلند پر بدلولویې مجبور کاندي، ځکه د دوی اوسنۍ تګلاره به یقیناً هم دوی او هم د چم ګاونډ هېوادونه خطرنکې پایلې ولري.

## د خوړو نړیوال پروګرام له سېلاب...

په خبره یې دوی به تر ارزونې وروسته سېلاب ځپلو ته بېړنۍ مرستې ورسوي. له پېښو سره د مبارزې د چمتووالي اداري د معلوماتو له مخې، په هېواد کې د وروستیو ورښتونو له امله ۳۶ کسانو ژوند له لاسه ورکړی ۴۰ نور ټپیان دي او څه باندې ۳۰۰ کورنه په نیمه یا بشپړه توګه ویجاړ شوي دي.

## د قوشتېپې کانال د دویم فاز...

د چټکتیا غوښتنه کوي او زیاتوي، چې د دې پروژې په عملي کېدو سره به زرګونه پانګوال دې پروژې ته ځېرمه پانګونه وکړي.

## کونړ کې یو پل ګټې اخیستو ته...

او ګټې اخیستنې ته سپارل شوی دی. د کونړ سرپرست والي قدرت الله ابوحمزه ویلي، چې د دغه ولایت په دانګام ولسوالۍ کې د ملي دفاع وزارت په مالي ملاتړ د ۱۸ میلیونه افغانیو په لګښت د ۳۱ متره په اوږدوالي او ۶ متره سور سره د پل د جوړېدو چارې بشپړې او ګټې اخیستنې ته سپارل شوی دی. نومړي زیاته کړې، چې د یاد پل په جوړېدو سره به د سیند دواړو غاړو ته د مېشتو خلکو د تګ راتګ ستونزې هوارې شي.

## تلویزیون آرزو فعالیتش را در...

که به‌عنوان رسانه آزاد و غیروابسته به فعالیت‌های اطلاع‌رسانی‌شان ادامه می‌دهند. دفتر تلویزیون جهانی آرزو در کابل حدود سه ماه پیش از سوی وزارت ار بالمعروف و نهی عن‌المنکر در کابل مسدود شد.

## حوادث ترافیکی در غزنی ۹ کشته...

ولایت غزنی، حادثه دوم نیز در شاهراه کابل-کندهار و در ساحه «خالوخیل» ولسوالی قره‌باغ این ولایت اتفاق افتاده است.

در خبرنامه گفته شده که در این حادثه سه تن زخمی شده‌اند.

پولیس غزنی تاکید کرده که هردو حادثه به وقوع پیوسته است.

دلیل هردو حادثه را قوماندانی امنیه ولایت غزنی، بی‌احتیاطی رانندگان گفته است.

## هرات کې د خطاطی هنر نندراتون...

او هنر امر حمیدالله غیاثي ویلي؛ د خطاطۍ د هنر د ژوندي ساتلو او پراختیا لپاره هڅې دوام لري، د اختیارالدین کلا په څېر تاریخي او سیاحتي ځای کې د دې نندارتون جوړېدل کولی شي، د هرات د خطاطی هنر نړیوالو ته وروپېژني.

د هرات د خطاطانو ټولنې مسولین وایي، په دې نندارتون کې د خطاطۍ ۴۰ ښکلي اثار نندارې ته وړاندې شوي دي.

## جوزجان کې د اوبو رسونې دوې شبکې...

سره، له ۲۶ زره او ۷۰۰ څخه زیاتو خلکو او د ګلستان کلي کې د اوبو شبکې په ګټې اخیستو سره، ۴۰۰ کورنیو د څښاک پاکو اوبو ته لاسرسی وموند.

## کونړ کې د ښاري سرغړونو...

مخنیوي ریاست رییس مولوي عبدالمنان حقاني وایي، په اسعداباد ښار کې د ښاري سرغړونو مخنیوي ټیم له لوري د یو شمېر غیرقانوني هټۍ‌یو له جوړېدو مخنیوی وشو. د کور او ښار جوړولو وزارت په خپلو ټولو پلانونو کې د ژوند په تړاو ټولو فعالیتونو لپاره د معیار له مخې ځایونه مشخص کوي او باید په هماغه ځایونو کې مشخص شوي فعالیتونه ترسره شي.

## ارزګان کې ۳ ښوونځیو ته د لمریزې...

نورو سوداګرو یې هم غوښتني، چې د پوهنې له برخې سره مرستې ونه سپموي.

ویل کېږي، چې د هر ښوونځي لپاره یې د ۱۷۰۰ ډالرو په ارزښت ۴.۲ کیلوواټه برښنا برابره کړې ده.

د مسئولینو په وینا، چې د لمریزې برښنا دغه سیستم په دریو ښوونځیو نورالله، غوچ او ارګون کهنه لیسو کې برابر شوي، چې له دې سره یې د برښنا شته ستونزې هوارې شوې.

Shariat Daily

Shariat
Published by
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

شریعت
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلور لارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
**شماره توزیع و شکایات:** ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶ / ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Sunday 02 March 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 696

# د قوشتېپې کانال د دویم فاز ۹۰ سلنه چارې بشپړې شوې



د ملي پراختیا شرکت مسئولین وايي، چې د قوش تېپې کانال د دویم فاز د کیندنې ۸۷ سلنه چارې بشپړې شوې دي.
د دې شرکت مسئولین زیاتوي، چې د دې کانال د سربند چارې هم د ۷۵ سلنه په اندازه بشپړې شوې دي. دوی زیاتوي، چې د قوش تېپې کانال پروژه د دوی په کاري لومړیتوبونو کې ده او د کارونو چارې یې په منظم ډول سره پر مخ رواني دي.
د خصوصي سکتور غړي هم د ملي پراختیا شرکت څخه د دې پروژې د چارو... **۳مخ**

## کونړ کې یو پل ګټې اخیستو ته وسپارل شو



د کونړ ولایت په دانګام ولسوالۍ کې د ۱۸ میلیونه افغانیو په لګښت د یوه پل د جوړېدو چارې بشپړې... **۳مخ**

## اقلیمي بدلونونو تېرکال ۹ میلیونه کسان اغېزمن کړي



د کډوالۍ نړیوال سازمان وېلي، اقلیمي خطرونو تېرکال د افغانستان په کچه نهه میلیونه خلک اغېزمن کړي او په خبره یې سېلابونو، وچکالۍ او نورو طبیعي پېښو نیم میلیونو افغانان د خپلو کورونو پرېښودو ته ار کړي دي.
په افغانستان کې د دغه سازمان مشرې مي هیونګ پارک زیاته کړې، موندنې یې ښيي چې څه باندې یوولس میلیونه خلک لا هم د اقلیمي اغېزو له خطرونو سره مخ دي. د هغې په خبره، د افغانستان په شپېته زره کلیو کې یې په همدې اړه یوه سروې کړې چې ښيي، نوي سلنې کلي بېړنیو خدماتو ته لاسرسی او نږدې سل سلنې یې طبیعي پېښو ته د چمتووالي سرچینې نه لري. اغلې پارک پر نړۍوالو غږ کړی چې افغانستان هېر نه کړي او د خپل ملاتړ پر مټ په افغانستان کې د راتلونکو ناورینونو مخه ونیسي

## یوې ښځې د خاوند له لس کلنې ربړونې ازادي ومونده



د غزني ولایت د ګیلان ولسوالۍ محتسبینو د بالاهیر په کلي کې یوه ښځه د خپل خاوند له ۱۰ کلن ظلم وژغورله.
د یاد ولایت د امربالمعروف ریاست د رسنیو دفتر وایي، چې له دې ښځې سره د خپل خاوند او خسرګنۍ له لوري ظلم زیاتی کېده؛ د محتسبینو له لوري د یادې ښځې خاوند او خسرګنۍ ته د ښځې د حقونو په اړه پوهاوی ورکړل شوی دی.
یاده دې شي، چې د ښځې خاوند او خسرګنۍ یې ژمنه کړې، چې په راتلونکې کې به ورته عمل نه کوي او ښځې ته به ټول حقه حقوق ورکوي.
دا په داسې مهال ده، چې د امربالمعروف، نهی عن‌المنکر او د شکایتونو اورېدلو وزارت اړوند محتسبینو تر دې وړاندې هم د مرکز په ګډون بېلابېلو ولایتونو کې ګڼ شمېر ښځې له کورني تاوتریخواله ژغورلې دي

## تلویزیون آرزو فعالیتش را در کابل از سر گرفت



مسئولان تلویزیون جهانی آرزو در کابل تایید کرده‌اند که فعالیت این دفتر پس از سه ماه دوباره از سر گرفته شده است.
همچنان مقام‌های وزارت امر بالمعروف و نهی عن‌المنکر می‌گویند، این وزارت در روشنایی ارزش‌های اسلامی و ملی متعهد به حمایت از آزادی بیان در کشور هستند.
به گفته مسئولان تلویزیون آرزو مشکلات این رسانه در نهادهای امارتی حل گردیده است.
آنان تاکید می‌کنند... **ص۳**

## حوادث ترافیکی در غزنی ۹ کشته و زخمی برجا گذاشت



مقام‌های قوماندانی امنیه ولایت غزنی می‌گویند، در نتیجه دو رویداد ترافیکی در مربوطات این ولایت ۳ تن جان باخته و ۶ تن دیگر زخمی شده شدند.
بربنیاد خبرنامه، حادثه نخست در نزدیکی بازار ولسوالی مُقر ولایت غزنی در نتیجه تصادم دو موتر مسافربری رخ داده که در نتیجه سه تن کشته و سه تن دیگر زخمی شده‌اند.
به گفته قوماندانی امنیه... **ص۳**




## مشاجره لفظی رؤسای جمهور امریکا و اوکراین



ولادیمیر زلنسکی، رئیس جمهور اوکراین در قصر سفید پس از آن که هدف حملات لفظی دونالد ترامپ، رئیس جمهور و جی‌دی ونس، معاون او قرار گرفت، با آنان وارد مشاجره لفظی شد.
بربنیاد کلیپ‌های ویدیویی از این مشاجره، ترامپ، زلنسکی را مسبب قتل صدها هزار تن در اوکراین و جنگ جهانی قریب‌الوقوع دانسته و معاونش گفت که او از امریکا بخاطر تلاش برای پایان جنگ در کشورش سپاسگزاری نکرده است.
رئیس جمهور اوکراین نیز در حالی که رفتار همتای امریکایی و معاونش را پاسخ داد تأکید کرد که او به قصر سفید دعوت شده تا مورد بی‌احترامی قرار گیرد.
مشاجره لفظی مقام‌های ارشد امریکا و اوکراین بازتاب گسترده‌ای در رسانه‌ها یافته و واکنش برانگیز نیز شده است.
ترامپ پس از این مشاجره در شبکه اجتماعی خودش (تروث سوشیال) زلنسکی را متهم کرد که آماده صلح با روسیه نیست.
قرار بود زلنسکی در این سفر قرارداد استخراج معادن کمیاب اوکراین را در بدل کمک‌های نظامی امریکا با ترامپ امضا کند اما پس از این مشاجره این قرارداد امضا نشد.

## واشنګټن، تل ابیب ته د ۳ میلیاردو ډالرو وسلې او ویجاړوونکي وسایل منظور کړل



د امریکا د بهرنیو چارو وزارت پر اسراییلو د ۳ میلیارد ډالرو په ارزښت د بمونو، تخریبي وسایلو او نورو وسلو پلور منظور کړی.
د دفاع وزارت یا پنټاګون په اعلامیې کې ویل شوي چې د دې وسلو د پلور په هکله د واشنګټن پر وخت پرون ماسپښین کانګرس ته احوال ورکړل شوی.
پنټاګون دا هم ویلي چې کانګرس ته احوال د اضطراري شرایطو له مخې ورکړل شوی. سره له دې چې پنټاګون ویلي اسراییلو ته د دې وسلو استولو چارې ښايي په ۲۰۲۶ کال کې پیل شي خو تر څنګ یې دا هم ویلي چې د دې وسلو یوه برخه ښايي د امریکا د ذخیزې څخه ورکړل شي او په دې معنی چې ښايي په سمدستي توګه به اسراییلو ته واستول شي.

## روسیه، واشنګټن ته نوی سفیر لېږي

روسیې او امریکا په استانبول کې د هغو اقداماتو پر سر هوکړه کړې، چې د دوی د سفارتونو او کونسلګریو پر فعالیتونو اغېزه لري.
د روسیې د بهرنیو چارو وزارت ویلي، چې امریکایي لوري تېره ورځ په ترکیه کې په یوه غونډه کې الکساندر دارچي‌یف د ټاکلو لپاره د تأیید اشاره ورکړې ده.
د دې وزارت د خبر له مخې، روسیې وړاندیز کړی چې د دواړو هېوادونو ترمنځ مستقیمې الوتنې بیا ځلې پیل شي.
یاده دې شي، چې د مسکو او واشنګټن تر منځ الوتنې د اوکراین د جګړې له پیل راهیسې بندې شوې دي.